

# ځاځکي ... ځاځکي

۱۸۳

دافغانستان دليکوالو دانجمن له خوا

اسحاق ننګيال

# څاڅکی... څاڅکی

## داسحاق ننګیال

دشعرونو څلورمه مجموعه

دکمال الدین مستان په اهتمام

کابل ۱۳۶۸ کال

د۱۳۶۵، ۶۶، ۱۳ او ۱۳۶۷ کلونو یو شمیر شعرونه

دکتاب نوم : ځاځکی... ځاځکی

شاعر: اسحا ق ننګیال

خپروونکی: دافغانستان د لیکوالو انجمن

مهتمم : کمال الدین مستان
دپښتی دیزاین : دذکر یا علـــم
خطاط : رسول شر یفی
دچاپ شمیر : ۲۰۰۰ ټوګه

دچاپ کال: ۱۳۶۸هـ،ش ـ۱۹۸۹ع

دچاپ ځای :دولتی مطبعـــــــه

(لینو تا یپ)

# ننګيال اودده
# شعر

له خو کلو نو را هيسی دپښتو شعرد کميت او کيفيت په لحاظد پاملر نی وړ امتيا زو نه تر لاســـه کړی‌دی .دشعر کا لبو تو نه پـــه ښکلو او رنګينو ګاڼو سينګا رشوی‌او دمتنوع مو ضو عا تو په در لودلو سره رنګين شوی دی‌او دغه شعری مسايل دژوند عمده مسايلو تــــه ځانګړی شوی دی.
ددغه غوره تګ لوری پيروان او پلو يان په ځوان کول کی له يــوی ورځی نه بلی ته زيا تيری او زمورږ **دشعرد غنا په برخه کی نوی‌زياتونی** کوی.

—لومړی—

دادی داسحاق ننگیال څلور مه شعری مجموعه (څاڅکی... څاڅکی) ددغه شعر ی بهیر یوه بله نـــو ی اضا فه ده.

دمخه تر دی دننگیال د ری شعری مجمو عی: (ډالی، سپیره ډا گو نه او غوړیدلی بز غلی ،هغه شیبی هغه کلو نه) چاپ اوخپری شوی چی دادب او شعردمینه والو تندی یی ما تی کړی دی.

(څاڅکی ...څا څکی ) د ننگیال په ځوان شعر ی عمر کی څلور مــه مجمو عه ده چی دنورو مجمو عو په پرتله یی په دغه مجمو عه کی دشعـــر پختگی دکمال در شل ته رسیږی.

ننگیال په ځوان کول کی د ښــه شاعــر په توگه شهرت لری اوداد ادب اوشعر سره دهغه دمینی او ریاضیت نتیجه ده چی دخپل فن په وړا ندی یی لری.

ننگیال یو ازی څو تش رنگیـــــن الفاظ دشعر په نوم سره نه پیی یا په بله وینا یوازی دښکلو او رنگینـــو الفاظو په قید وبند کی نه پا تی کیږی اوهم نه یوازی دیاس او نا امید ی شا عرانه زن یرو ی کوی، بلکــی دتړون او تعهد له مخی دننگیـــال شعر دپرگنو او اولسو نو ار مـان منعکسو ی او په هر حال او هروخت له ځان سره پیغام لری او عـــم دشعریت او هنری توب له مخی په جما لیا تی لحاظ دخپل خیال نیلــی ترلوړ وڅو کوز غلوی.

که دننگیال شعر په جولیز اومانیز لحاظ څیړ و نو دیوښه شعر اویا په بله وینا دیو منلی شعـــــر ټولی ښیگړ ی په کی وینو.

هغه څه چی په شکل پــــور ی مربو طیږی ننگیال په ډیر هنرمندانه ډول اوکله کله دیو نو ښتگر پـــه توگه خپل شعر ښه سینگار کړ ی دی او بیا یی په دغه ښکلی جو له کی دخپل اولس آرمان او دخپلو خلکو لپاره پیغام ځای کړی دی اودخلکو لپاره ،منلی اواثر بخښو نکی شعر هغه دی چی په جولیز لحاظ دښکـلالرو نکی اوپه مانیز لحاظ دټو لنیزی محتوا ویند وی و ی.

دننگیال دغه مجمو عه د غـــزل او آزاد شعر یوه گډه مجموعه ده

اوله نیمگړ غه ننګیال دشعر پر دغه دواړو ډو لو نو ډیر ښه لاس بری لري.

خود آزاد شعرو نو په پر تله یـی غزل څه ناڅه زیات دی او دا هـم د هغه ضرورت له مخی چی زموږ د ځوان کول شا عرانو په داڅوکلونو کی دغزل په میدان کی نوی ګامونه واخیستل او ددغه صنف څه نا څه نیمګړ تیاوی یی پوره کړی.

خودننګیال غزل دټولو رنګینو سره یوه ځانګړی ممیزه لري او هغه دا چی ننګیال دیاس او ناامیدی په پنجو کی نه دی را ګیرد تغـزل په ژبه دښکلااو حسن په ښکلـــو تشبیها تو دز نځیر ونو په ربـــاب دتیارو په جیل کی دامید اوبر یـــا لیتوب نغمی غږوی او وا یی:

اوښکی پر یوځه خوره شه چی دشپود جیل بندی یم
دتیاره ماحول ډیوه شه چی دشپودجیل بندی یم
دماښام ډمی می بولی په ژوندو ندمرګ بد لی
ای دویر پیغلی! نغمه شه چـــی دشپو دجیل بندی یم.
راته وژنی خوب په ګو تو دشـــوګیر پیغا مبر را غی
مه ځه مه ځه را ستنه شه چـــی دشپو دجیل بندی یم
هر زنځیر را ته رباب شو هره وریځه جام دملو
دځوانی لنبتی کړه شه چی دشپو دجیل بندی یم
غواړی ځان ته می سجده کـــړی زه په تیټ سر بلد نه یم
دغیرت ناوی شمله شه چی دشپو دجیل بندی یـــم

دننګیال دغه شعر په ټو لـــــو شعری ښیګړو پـــــوره دی نو ی تشبیهات او نوی شعر ی مفا هیـــم لکه د ماښام ډمی، دشپو جیل، دشو ګیر پیغا مبر، دزنځیر رباب ما تـــه نوی ښکار ی.

ـــ دریم ـــ

دننگیال دشعر یوه ځانګړ نه داده چی پښتنی رنګ لری او پښتو پښتو نو لی په کی یو مهم اصل دی اودا ځکه چی دشا عرا ولیـــکوال شخصیت ، ځانګړی ژوند، عقیده او نظر په خپلو ایجا داتو کی خه ناخه دخیل وی.

زموږ ځوان شا عر دیو پښتون په حیث دخپل نظر، عقیدی، پښتو او پښتو نو لی سره په خپلو شعرو نو کی ځلیږی لکه:

نوم می دی تش غو ندی پـــه خو له واخیسته

لویه پګړ ی می تو متـــــــــــووخوړ ه

• • •

دننگیال په شعر کی دوطن مینه، دانسانی مینه ، پښتوپښتو نو لی، دمظلوم او زیارکښ ژوند اودآرمان مضمو نو نه ځای شوی چی په ړه پوری متنوع مو ضو عات جوړ وی اودهر ی مو ضوع په بیان او انځورو نو کی عاطفه او احساس را نغښتل شوی دی.

لکه څنګه چی دمخه وو یل شو چی ننګیال په آزاد شعر کی هـــم پوره مهارت لری اوددغه لیکی په بنوشاعرانو کی راځی په داسی حا ل کـــی چی آزاد شعر په پښتوادب کی نوی غزونی کړی دی او اوس هم لـــه زیاتو مخالفتو نو اوستو نزو ســره مخامخ دی زه په دی عقیده یم چی دآزاد شعر ځای تشه په پښتوادب ادب کی ډکه ډك شی اودغه ادبـی لاره ښه وپالل شی. که د آزادشعر سره نا سازګــان دننگیال (داکلی مه ورانوی) ولولی نو په دی به باوری شی چی آزاد شعر هم لکه دشعر، دنوروډولو نو په خیرتاثیر بخښـــو نکی او منو نکی دی اوپه یقین سره چی هغه ناسازی به یی په مینه بدله شی.

(داکلی مه ورانوی) چی دجنګ پرضد ویل شوی دی دو مره عاطفی دی چی که هرڅو مره زړه تـــوری انسان یی ولولی نو زړه به یی نرم شی او په جګړه ما رو به نا ړی تو کړی:

داکلی مه ورانو ی!
داکلی مه ورانو ی!

گوری چی هلته دشنوو لود شنو سپورو لاندی
گوری دشنی ویا لی تر څنگه د جلگود پاسه

یو کوچنی پروت دی
یو کوچنی ویده دی

اودوړی لو پټی لاندی
په خوب وړو ستر گو
دناز په غیږه کی کوچنی شینکی خوبو نه وینی

داکلی مه ورا نوی!

دننگیال په شعرو نو کی ډیرڅه نوی لیدل کیږی. په ننگیال کی یو خاص شعر ی استعداد مو جود دی یو خاص نو ښت اړ که ووایو چی (یو خاص شعری نبوغ) نو مبا لغه به مو نه وی کړی هغه دښکلـــــو تشبیهاتو ، استعارو ، کنا یو پیو نکی ، دنو یو خیا لو نو مبتکر اود یوی ښی غز لیزی ژبی خاو ندی.

رنها ړ نده شی چی می را شی په څنگ
په سپینه ورځ دتورو شپو ملنگ شوم

دننگیال فن په غزل او آزادشعر دواړو کی دکمال پوړی ته رسیږی د ننگیال په شعر کی دهغه د لهجـــی تاثیرات بارز دی او کله کله خــو داسی بربنډ کلمات استعما لـــو ی چی نورو شا عرانو ته عجیبه شـــان ښکاری او کله کله هم په خپل خیال کی دو مره ژور لاړ شی چی ځینو ته یی ما نا مشکله شی.

دادسپر لی دشینکی بادوزرو نه چاتړ لی؟
چی دسپوږ می شو نډو کی تورو وریځو ځاله کړی ...

ـپنځمـ

دننگيال دشعرو نو دا (خا خکی.. خاخکی)دشهید دوینو،دیوی کونډی ،
مور اویتیم داو ښکو، دکار گر او مزدور دخولو ،دمین او مینی داوښکو
اودسپر لی دبا ران خاخکی دی‌چی‌غرونه رغونه‌شنه کوی،ښایسته گلان
راټوکوی‌اورنگ راوړی .

امیددی چی دننگیال دشعرو نودا (خاخکی ...خا خکی) به زمو نږد
شعری بڼ دښکلا خا خکی شی.

ننگیال بهوی او که به نه‌وی‌خو راتلو نکی به یی یادوی او دده‌شعر
ونه به همیشنی وی.

په‌غم کی دننگیال که‌د چا تو یه نـه شوه اوښکه

همدایی پس له مرگه غزلو نه‌دی‌چی ژاړی .

په مینه
بريالي باجوړی

# مستی

ماد لو یو هسکو غرو نو لــــه هوانه

مادتو ری چا ودید لی شپی لــــه تیو

اوه! پیا لی ، پیا لی شراب د مستی ښنبلی

اودستورو دمو سکاله با غیچــو مـــی

دزړی پګړی په ول، ول ګـــــلان کیبنو ل.

# آوښکی

جام، جام شوی ښخیږ ی نه‌دا څر نګه اوښکی دی
پیغلی شوی مو سیږی نه‌دا خـر نګه اوښکی دی

ستا ښا یست زما نظر او روچی اوبه یی کړ
وچاو دی تو ییږ ی نه دا خـــــر نګه اوښکی دی

غواړی چی پیا لی، پیا لی سترگی اشك نو شانې دی
بحر شوی‌و چیړی نه دا څـــــر نگه اوښکی دی

پورته لوپته چی شی دوی شـی لوپتی‌دمخ
عشقه ! چی شر میړی نه داخـر نگه او ښکی دی

زانگی دښوپه سر مخ با نـــــدی گو نگری ،گو نگر ی
کا نـــی شوی ما تیړی نه‌داخـر نگه‌اوښکی‌دی

# ښاکـې

زخمو نه بې دوادې چې مې ښناك شوې تورې شپې
داټول غمونه ستا دې چې مې ښناك شوې تورې شپې

خيالونو دې اوبه ګړو پسرلى زما دو يــــــر
وختونه دژړا دې چـې مې ښناك شوې تورې شپې

دزړه په باغیچو کی می شو هر زخـــم نا ســـور
ر نځو نه دو بادی چی می ځنبناك شوی توری شپی

په کاږو دپیغور می دا مغــــرور تندی شو مـــات
خبری دهر چادی چی می ځنبناك شوی توری شپی

ویده نه یـــم چی را شـــــی څو کیداری دشو گیر
دااوبنکی څه بلادی چی می ځنبناك شوی توری شپی

لاهو چی دی په غم کړم غز لخوان به دی شی څوك؟
بنبیر ی دی په رښتیادی چی مـــی ځنبناك شوی توری شپی

# جېل

اوښکې پر يو ځه خوره شه چې دشپو دجېل بندي يم
دتياره ما حول ډيوه شه چې دشپو دجېل بندي يم

دمابنام ډمې مې بو لې په ژوندون دمر گ بدلې
ای‌دوير پيغلې! نغمه شه چې دشپو دجيل بندي يم

راته وژ نی خوب په گو تـــودشو گیر پیغا مبر را غی
مه څه مه څه را ستنه شه چــــی دشپو دجیل بندی یم

هر زنځیر را ته رباب شو هـره وریځه جام دملـــو
دڅوا نی لښتی کړه شه چــــــی دشپو دجیل بندی یم

غواړی ځان ته می سجده کړ ی زه په هیڅ سر بلد نه یم
دغیرت ناوی شمله شه چـــــی دشپودجیل بند ی یم

# مستقبل

رون می مستقبل شو خو تیا رو ونیو
رب دپسر لیو می اغـــــــز و ونیو

توی یی کړ و با ران، دجلو هلوسوال
سر ور ته په لاره کـــــی او بـوونیو

ماوی چې مړو ند به یې زرپــــو شه شی
مات پکې بنګړی شـــو اتکرو ونیو

راغله خندا پر یو ته له ستـــر ګونه
ویر می په منګو لو کـــې بنـــو ونیو

چرته یو سم جام دشرا بــــی عقل؟
ځای دمیکدو چی می کعبــــــو ونیو

نور مـی نو آشنا ! په پلـو مـه راځه
دلته هر قدم قصا بخا نــــــو ونیو

# دسفر په لاره کې

مامې دمينې نو با لغه څېړ يکـــه وليدله
چې مې دياس او دو همو نودتيار وشيبې يې
دخپلو سترګو د الما سو پــــه تيغ خيرى کړ لــــى
*

---

*آنگاه بانوی پرغرور عشق‌خودرا دیدم
درآستانه نیلوفر

احمد شاملو

ما مې دمینې نو بالغه څرېکــه ولید له
چې دسرو وینو له بستر نه یــې دستور ونجو نې
دشپو دخدای له ګنهکا رې غیرې خلاصی کـړلې

* * *

ما مې دمینې نو بالغه څرېکــه ولید له
دسبا یې ددې ور ینبمینې ور مې سیورو لانــدې
چې دآسمان دور یځو سیـــــن نه دسفر لاره کـــې
دبا رانی ګلو سلام تهغیر دځمکې نیسې .

# ږلـــی

په‌دی سپر لی څه وشول؟
سپینی وږمی څه شو ی ؟

چی بی خزانه باد زموږه دبا غچو ګلو نه
سپیرو اغزو ته لکه ستړی بـــاز ینګر ګډوی

داپسر لی څه شو؟
دازر کی چر ته لاړی؟

چی زمو ږ دغرو په لاله یـــیدرو کی
اود بادو نو دپستو سینو تـــر سیورو لا ندی
دځو زو ډلو او دکاړو کـاروان غیرږی مو بنی

اود آسمان غیږه کی
شفق راوسو ځید
په شنو پا ڼو یی

ځولی ، ځولیدسرو سکرو تړ .و ږلی و شند لی

# کاته

داغز و عمر تیر و مه په چمن کـــی خا ندم
په پته خو له لکه دشمعی خنکدن کی خاندم

سلگی ، سلگی شوم خو مغروری اوښکی تویی نه شوی
داسی پښتون یم چی تو تی ، تو تی کفن کی خا ند م

مادو زخی پەدی وړو لو گیـــوخەو یـــــرو ی ؟
لکه بخر ی دایرو لا نـــدی خوږلن‌کی خا ند م

لاخود ویر په چم بلدنه‌یم چـــیو دی ژا ړم
لکه دوینی د شهید زلمی په تـــن‌کی خا ند م

ماته له و را یه دپښتو نــــاوی‌خوازه کتلی
چی تیغ په ستو نی دقاتلوپـــه‌وطن کی خاندم

# هوس

گر یوان می خیرِ ی شو د غرو ملنگ شوم
سبتر گی کچکول شوی د کو څو ملنگ شوم

چی گرځوم داسی تند ی دتقد یر
دخپل آرما ن دهد یرو ملنگ شوم

رڼا پړنده شي چې مې راشي پر څنک
په سپينه ورځ دتورو شپو ملنګ شوم

هر زخم باغ شو ته را نغلی آشنا !
اوس نو راځه چې دا غزو ملنګ شوم

پرون سلطان وم درنداو ساقی
نن يې حضور کې دبیالو ملنګ شوم

قتل شو زړه کې ستا دشو نډو هوس
خير دی تنها د ې دلينې ملنګ شوم

ملګرو څه مې په حجرو کې پلتهی ؟
را شي دو ړا نو کنده وا لو ملنګ شوم

پریکړه وکړ ی چی مرگ له دی ښخه ورو سته
دجگړی په خونړ یو لاسو نو
دخپلو تروږ میو غچ
دبیگناه ژوند له سپیڅو ښخـــه وانخلی
پر یکړه وکړی چی .... جگـړه ومړی

کارو

# له ځمکی تر آسمانه

-۱-

زماد کور هغه وړه هغه بیبـاکـه فضا
زما دکور هغه زاړه هغه ښتهیـــن بامو نه

چی ډو بید ل به د ما شو مـــو خندا گانو سین کی،
زما دکور وړه باغچه کی دسپـر لی ښاپیری

دسرو ګلا بو دشنو پا ښو جنتــی تخت نه یی
چی شنو مو سکا وو کی ډك جام دبد مستی را کاوه،

زما دکلی هغه لو یی ، هاپراخی کوڅی
زما دکلی هغه شنه هغه سمسور باغو نه

زموږ دنجو نو حرم
زموږ دسپین ږ یرو دیر ی
زموږ دستړو کرو نډ ګرودغرمو څپری
دمرګ په ولوږانګی.

-۲-

آسمان دلو یو خړوو ر یځـــواو بارو تو لو ګی
ځمکه دوینو او دمړو له کو پړ یو ډکه

انسان دو یر او ددر دو نو ا و مرګو نو کور به
کور می دمړا وو بیګنا هو امیدو هدیره

دنیا مو ټوله نړوو نکو تو پا نــو نیو لی
نو عقله !
نو عقله ای دتو پانو دغلو پـــه لاس تنبتول شوی بیړی!
وایه چی چر ته لاړ شم؟
او پردی ځان څه وکړم؟

# دستور و پەبام

گوره چی گلو نه پا نه پا نـــه شول
سره سره می زخمو نه پانه پانه شول

تشەوەم په غاړه دا ســــــروەخولی
ډیر می آرما نو نه پا نه پا نـــه شول

ټن مې د پړون په بیه مـــــــــــه کسه
باد یوو ړل و ختو نه پانه پانـه شول

زلفې بیا دستورو په بـــام پــر یوتې
شپې شوې سحرو نه پا نه پانه شول

مالا ورته گوتې وړې نه‌وې چې
مخکې مې جا مو نه پا نـه پا نـه شول

ماته یې پیرزو کـــړ بلا نو شـں نظر
اوس چې هو سو نه پا نـه‌پانه شول

جوړ به شې دا ټو لو نه غـــزل غزل
خیر که مې خیا لو نه پانـه‌پانـه شول

# داکلی مەورانوی

داکلی مەورا نوی!
داکلی مە و را نو ی!

گوری چی هلتەدشنو و لود شنو سیورو لا ندی
گوری دشنی و یا لی تر خنگـــە دجلگود پاسە

یو کو چنی پروت دی
یو کو چنی و یدە دی

اودوری لو پتی لا ندی
پە خوب ورو ستر گو

دلاز پە غیرە کی‌کو چنی شینگی خوبو نەوینی
داکای مەورا نوی!

داکلی مه‌ورا نوی!
گوری چی هلته لکه زر کـــــی زه‌وړ دکلی نجو نی

گوری چی هلته دبا ده پر ســـر نورسی بیغلی
کتار، کتار

دلمر ترو ړا نگو خپل پیکـــــی جوړوی
اوپه میینو ژړو

دپیغلتوب غوړ کی د خوان هوس سندری بو لی
داکلی مه‌ورانو ی!

• • •

داکلی مه‌ورانو ی!
گوری چی هلته له هغو سپیـرو کوڼ لو څنی
گوری چی هلته ددی تور ی تر و ږه‌ی له غیږی

ساپه څگیرو ی جگیږی
سوز ه‌ن آواز را څی

او امیدو اری میندی
دانتظار دبن دسرو گلو نـــو لاری خاری

داکلی مه‌ورانوی!
داکلی مه‌ورانوی!



# سفر

فضا دستورو دمو سکاوو دګلونو باغچه
پرخمکی ووری دوږ مو د شنـــو لښتیو پرخی

ځنګل بدل شو د زیتو نو اونار نجو په باغ
خولا سفر پاتی دی

زموږ دسفر لاره کی ګوری چـــی سپیځلی پری
سره اننګی ، ښا یسته لیمه راته مشال نیو لی

اود سپوږ می له هر قد مه سره
دسپر لنی شیبو تلپا تی ګور ته لار باسو.

# ماښامونه، ساغرونه

خندا که رانه تښتي فر یادو نــه خو مي خپل دي
ماحول که مي خوږ لن دي بیابانو نه خومي خپل دي

داتول ګلو نه ستا دلي د لي یـي ږده په زلفو
سپیره که مي شمله ده پر هرونه خو مي خپل دي

لایق یی که دښښمو نه یم ساقی جام دی درو اخله
خــم خــم چی‌الرم‌او ښکی ساغرو نه خومی خپل دی

ملا! څه‌می دور ځی په دی ډکو کاسوو لی؟
دحورو لیو نیه !ما ښا مو نه‌خو می‌خپل دی

کم‌څو باندی دشپو به‌وورومد اوښکو ستوری
خو بو نه که دښمن شوو ، شــــو گیرو نه خومی خپل دی

# زماکلی

کور کلی تالادی در مندو نه می لوټ شو ی
هره خوا چی گور مه گلو نه می لوټ شوی

شورد بلبل نشته وریتوی یـــی انگار کړ یکی
ځانگی ځوا نیمر گی دی باغونه می‌لوټ شوی

پانې کنيز انې دې ګلاب غـــلام دځوزو
مړی تولی وږمې دې بهارونه مې لوټ شوی

جوړی دې دبام په سر کی خالی دکار غا نـــو
ورانی مې حجر ی دې اوکوروڼه مې لوټ شوی

لاری د ځلميانو، ما بنامې ديری دنجو نو
مات پکی منګی دې ګو درو نه مې لوټ شوی

ماچې به کو لی پکی خپل کـــو چنيتوب لوبی
خاوری دې اير ی دې محلو نه مې لوټ شوی

# کانه

خیال دی او به کړو پسر لی کی د پر هر گلو نه
پښتنی کیده په و ربل کی د خیبر گلو نـــــه

ستا می دزلفو په یاد گرا نـــی! داسی لو به کړی
چی می با غچی با غچی کر لـــی پر ځگر گلو نه

رانه به هیر شي هغه ستوري په ماښام دوصال
داسي خو مه ږده په کمخو دماز یګر ګلو نه

ښها یي چي ستاد اننګو به مــــي کوم یادکړي وي
اوس چي راووري لکه پر خــــي دسحر ګلو نه

دشو نڼو خیال دی په ننګیــال داسي کانه کړیده
چــي هــر غزال نه یي وریــږي دعنبر ګلو نه

# دادوچکالی گلان

داسوی ستی وطن پریږ دی چی لمږاو خا ندی
دغه غیر تی وطن پر یږدی چـــی لږو خا ندی

دادمرگ او وینو سین دا دزړه چاودون محل
داژوبل زخمی وطن پریږدی چـــی لږو خاندی

مه وژنی دشپو په تیغ روڼ دمستقبل څرا غ
ستړی فریادی و طن پرېږدی‌چی لړوخاندی
اوښکی دپیغلو ژومی چغی‌دمظلوم یتیم
زوی دمور نی وطن پر یږ دی چی لړو خا ند ی

غاړه کی پر ته شمله پری چـــی هسکه‌هسکه شی
خلکو! دا ننگی وطن پر یږدی‌چی لړو خا ندی

دادو چکا لی گلان او رنــــــه، او بیدل غواړی
تږی دسپر لی وطن پر یږ دی‌چی لړو خا ندی

# درنا کلی ته

زه به دستر گو تخم
دغه را نه کسی
دوچی ځمکی په تجبنه غیر کـــــی وکر مه

او،

دسینی له باغ نه
بهمی دوینو څراغ

تورو کو څو کی
دلارو یو مخ ته ونیسمه

څوچی په گلهه سره
دی لو یو شپو کی

درنا کلی ته تول ور سو!

دمرحوم بینواپه‌یاد مشاعره‌کی

# مالی

وخت دگل قاتل شو دا غزو دبن مالی شو
عشق ځکه په دار دلیو نو دبـــن مالی شو

دلته چی بد له مینو شی په ځان نوشی شوه
ژوند خپلو تیارو کی دډیو ودبن مالی شو

سری یی چی پر هر کړی دزنځیر درباب اوښکی
نن می دپیغلو ټودبنګړ و دبـــن مالی شو

ساه یی چی غوټی کړه دپښتــو ښځی وربل ته
ګوره اوس زموږ د حما سو دبـن مالی شو

خودبه ګرزوی نجو نی په سربا ځغچی دګلو
دلته چی هرزوی دپسر لو دبـن مالی شو

خیال می ښکلو ی دمسا پـــــر (بینوا) ځلی
والوت لکه دود خو د پښتو دبن مالی شو

# دچړی پهخوکه کی

داد سپر لی دشینکی باد وزرونه چا تړ لی؟
چیدسپوږ می شو نهو کی تورو وریځو ځاله کړی

اودشیطا نی شپی په لومو کـــی دستورو نجو نی
دمرګک لهنو کونه
کتری، کتری راتویی شولی .

داد سپر لی دشینکی باد وزرونه چاتړ لی؟
چی دتیارو په جهنم کی دا غزیو لښکر

دبلا ربو بو ټوله شیدو نه ډکتیو نهشکوی
اودنر گسو دا مو سکی،موسکی رنگینی ستر گی
دلاس په نوکو باسی .

• • •

دادسپر لی دشینکی بادو زرونه چا تړلی؟
چی زموږ دکلی دبا مود ســــر سپینکی کوتری

دزهر جن غبار د زهر ود با ران له لاســـه
له ډیر ی ویری دښکاری گو تو کی ځاله کړی
اودچړی ځوکه کی
سپینی دانی لټوی.

# ســوز

ڕیوی می زڕه تە سو ئی کەڕیوو تە میزڕه سو ئی
دابل دی اننگی کە اننگـــــو تە می زڕه سو ئی

ساقی پەدی محفل کی دغه سری وڕانگی دشه دی
ڕها د سروپیالو ده لکەپیالو تەمیزڕه سو ئی

شاید چی فلک سوزغرور مودواړه سپیلنی کړو
پښتو رابانډی او ر دی که پښتو ته می زړه سو ځی

چی وخت یی دراتلو شی لاس کی سوی غوټی راوړی
سپر لی لمبه لمبه دی که سپرلو ته می زړه سو ځی

دازه دتو بو نه یم که تو بوکـی اثر نشته؟
تو بی می زړه کی سو ځی که تو بو ته می زړه سو ځی

چی تل لاس اوګر یوان وی عمـر ټول پی داسی تیر شو
داشپو ته ،شو ګیرو که خو بو ته می زړه سوځی

# سجدی

غوټی دمینی می سپر لوو خوړه
ځوانی خوداوه چی غمـوو خوړه
یوځلی راغله دمو سکا ناوی می
وخت می خه پیغله پهلمبو وخوړه

نوم‌مې دی تش غوندی‌په خولــه واخیستـه
لویه پګړی مې تو متوږ خــــوږه

چې‌دی‌خند ل زماپه خیری‌ګریوان
عشقه! کوڅه دی لیو نوو خوږه

ځوانی مې پا نه شوه‌داستاځنو ته
په نیمه لارکی رانه غلو و خــوږه

څنګه به نکړ مه سا قی ته‌سجدی
هره‌سجده مې چې‌کعبو و خو ږه

# غزل

سترګی می ړندی شه چی به تاته نه ګورم
عقل می ایری شه چی به تا ته نه ګورم

پری به می لیمی کړم که شی بل مخ ته کږی
خاوری پی خوری شه چی به تاته نه ګورم

ستر گی حیا گری دی چی برندی گوری نه
خو نی می سپیری شه چی بـــه تاته نه گورم

مخ ته می جانانه ! قسم خه‌ږدی دپښتـــو
ورانی می دیری شه چی بـــه تاته نه گورم

سری پیا لی می عقل او جنون‌می ستا ککـــی
ماتی می پیا لی شه چی بـــه تاته نه گورم

وخانله آشنا! چی‌شی‌قر بـــان درنه ننگیال
مری را ته اسر ی شه چی بـــه تاته نه گورم

دجګړی یو کوچنی تصویر

# وهم

ماته دشپو د ظلمتو نو لــــــه زړه
دکوم ورا سته جسم ږو یو نــه راځی

ماته دکوم ورا سته بد ن لـــــه خولو
ورستی وږمی ، ورا سته دوړدونه راځی

• • •

ماته دی شپه کی دمر ګی لـــــه پولو
کومی لیچنی ستر ګـــــی لاری ښییی

ماته دختو له بو ینـــــــــــو څپو
څوك دتنها کوو ینـــــــو داری ښییی

• • •

ماته دستر ګو په نمجنـــــــــو ښو
څه اشاری کړی دږ نــــږو نـــو چینجی

ما، په دا تورو او څګنـــــــواو ښکو
څه ته را بو لی دقبرو نـــــــو چینجی

ماته دمړ و په کــو پـــړ یــو لګیا
دتورو شپو پیر یا ن ستو نـــه کوی

ماته دچا په وینـــو چا و دی کارغه
لکه زخمی ښا مار ګوا ښو نـــه کوی

● ● ●

ماته خادی په سر بیلو نه پـــه لاس
یو داړو ر سیور ی قبرو نـــه باسی

ماته په مړ وار ګمو ستــــړی شبح
سرنه ما غزه زړه نه رګو نـــه باسی

* * *

دلته د تورو ما ښامـو پـــه چړو
دخپلو غو ښو خیر یــــد ل وینم

دلته دتور ی شپی دنو کــو پر تیغ
دخپلو ستر ګو ړنـــد یــدل وینم

* * *

دلتـــه دتورو قبـــروو ړی افعی
زماپه کو لمو باندی شخوندو نه وهی

دلته دتورو وینـــو تـــږی لیوه
زما په رګو با نـــدی غا ښو نه وهی

دلته دلو یو گنا هو نـــــــو آسمان
ماته له ور یځو نه کفـــــــن گنډی

ماته دالو ی جهـــــان دو هـم شیطان
لهتورو و ینــو نــه مــد فــن گنډی

# دځوانۍ شپې

ويلې ،ويلې په در ګاه کې دصنم مرم
پر سرو شو نـــه‌و دګلاب لکه‌شبنم مرم

دسلګو مزل مې خدا يه! چې‌لنډ نکړې
ستړی ، ستړی يې پر هر ګام‌او قدم مرم

پاڼه نه يم چې په تش پوکې لمبه شم
لکه شمعـــــه ترسبا قلم ، قلم مرم

وچو شو نهٔو ته مې ست دخمار خه کړی
ساقی! دلته چې په ځنګ کې دحرم مرم

دځوانی شپې مې جنت ته نسيه مې ږدی
زه سر کښه په لمبو د جهنـــم مرم

# دشپې پر بام

نن مې دکور له پنجرې نــــه
دمغرب له لورې

یوې مرورې لې
خوسا شوې وږمې.

سرا خیستې
اودګلانو په چو پتیا کـــې

دکار غا نو دېلو
تیارې پر سر

دسبا یې په شبنم او لا مېلې
سحر له شرمه

ښخان تهونه کتل
ګلانو خپلې سرې مچکې پرې کړې

او لمر خو لې ،خو لې
دشپې پر بام و یده پاتې شو.

# ورمه

اوښکه بهر شوه په کوځه کـــې داغیار پر یوته
لکه منصور مې دځواني شمله په دار پریو ته

دسترګو غېږ کې چې یې ورېم جنازه سترې، سترې
پیغله اسره مې دقاتل آشنا پــه لار پر یو ته

دوینو ستوری می کتار کړل د جانان کوخه کی
دوزخی شپه وه په رقیب لکـــه انګار پریو ته

زاهد منبر کی دالله پر ځای خمار چغه کړه
مور ګه دجام چی می په سروشو ندو دیار پریو ته

کفن به غاړه کی والله چی دواده کالی شی
دلو پټی وږمه دی زما که پـــــه مزار پریو ته

# درنامرگ

لا دنر گسو دموسکا په سپرلنی پـانـو کی
غرمو خوږلی ،
جل‌وهلی کربلاو یده‌ده
دشپو په څنو کی
دتورو ، تورو وریځو خما ر
دسپو ږمی زړه نه
دسروو ینو پیما نی اخلی
او اطلسی با غو نه
دسرو گلاپو
دغو تیو جنازی پر اوږو
دپر هرو نو
دبا غچو دا غی گلو نه پرسر
دتور خزان خو نی سیلیو ته سلام کوی
اودسپیدو له باغ‌نه
دتوری دښتی
پر اغز نی چاودی ، چاودی‌سینی
یوه‌رڼا ولو یده
یوه رڼا مړه شوه
(چی رنگ دلمر یی در لود )

# درز پیغلی

لمجی می لیو نی دی که و عد ی دی لیو نی شوی
وختو نه درو غجن دی که تو بی دی لیو نی شوی

جرگی چی می داونبکو زو بلـــی ژوبلی در نه را غلی
پښتو دی بازار ی شوو که کوڅی دی لیو نی شوی

په غوږ کی ملا یکو در ته خــــه ووی زاهــــده !
ساقی ته چی مو سنکی شوی پیما نی دی لیو نی شوی

شیبی دی دڅوانی دی پسر لــو دی بها نه کړ
سپر لی خپودی غلام دی چی ورمی دی لیو نی شوی

دخم غاړی ته ناستیم بنکلوم یی درز پیغلی
قربان خماری عقله ! چی نشـــی دی لیو نی شوی

# محل

سو ځم پې سا قي! ستاداورو نو محل چېرته دی
ستاددی تر خو، ،تر خو چا مو نو محل چرته دی

زما خوږه ګی باغ شو یو تـــنک سور دپر سرو نو بڼ
ستاد تورو زلفو دګلو نو محـــل چر ته دی

ستر گی شو منا کی او با نه‌دی له حیا نه‌یک
ستاد غو غلو غلو گو زارو نسو محل چرته‌دی

ووری می په سر لکه باران اوده سپر لی زلی
دامی در قیب دتو متو نو محسل چرته‌دی

• اوښکه، اوښکه تو یی شوم هه‌و کی‌ویلی ،ویلی شول
ستاد آنم خورو مکیز و نو محل چرته‌دی

ماجی گری ننگیا له! ستاد خیال سپوږمی اوبه، اوبه
ستا ددغه مستو غزالونو، مسحل چرته دی؟

پوها ند دوکتور زیار ته
دهغه دپنځو سمی کالیزی پــه مناسبت

# ته‌لکه‌لمر...

ته لکه لمر
دخپلو و ړا نګو
طلایی لمبو نه

ذره ، ذره
په مړا وو شمو یو
(ګلو) وځځیدی

او،
دشینکی ذهن
دهسک
له‌رڼوستوررونه‌دی

زموږ ر ژبه لی
او سر تور (بن) ته
سالووګنده

# افسانه

دبی وز له یتیم شپه یم تیرو م شیبی په او بنکو
دباران دویر نغمه یم‌تیروم شیبی په‌اوبنکو

لکه باد په شو نه‌و مو بنم دخزان‌دوریځو سترگی
داغزو دمخ خو له یم تیروم‌شیبی په‌اوبنکو

دفریاد په نو کو کارم ددی غرو له سینو وینی
دفرهاد دلاس تیشه یم تیــــروم شیبی په‌اوښکو

دنوحیانو کښتی سرورې زمــا داوښکو په جیحون کی
دبی وسه غچ ناره‌یم تیروم‌شیبی په‌اوښکو

دجنت په لیمو پل ږدم ښکلوم‌دوز خی خاوری
داد کوم دهر بنده یم؟ تیــــروم شیبی‌په اوښکو

دخزان ور بل ته گل اودسپرلی څنوته ځوزشوم
څه بی ډو له افسا نه یم تیروم شیبی په‌اوښکو

اشنا چی په ما ستاد مینی تـور ولگیده
په‌دی هم درقیب په خونه اورو لگیده
استاد حمزه

# پور

بیا می دزړه په مینـــــه او رو لگید
ستاد بنګړ یو چی پی شـــورو لگید

اوس په شمله ګر څوم هسکـــه پرسر
ستا چی په ماد مینی تـــورو لگید

داسې مې مه بو له خبر نه شــي ځوك
کاږي دېل ســـــړی په کـــورو لګيد

رقيب په لاره تير يده بـــــو نګيده
هسې مې غوږ با نــدی پيغورو لګيد

اوس چې شيبې دمينو شـــي‌دی زما
خدای زده سا قي چر ته په‌ګورو لګيد

ډير تخيل به مې شا عر کـړی آخر
داد آشنا را با ندی پــــورو لګيد

# ارمان

غمو نه خودی بنه دی چی دشپی راته راځی
ملنګ ددیدن نه یم خو ګیلـــــی راته راځی

ولول دی په مخ پریو تهدور یځو لو پتهـــه
وربل دی که را تول چی شـــو ګیری را ته راځی

تالو نه دی دغم چی ځنګوی می په اوږو
ډیوی دی کړه رابلی چی نیـاری راته راځی

یوازی خو درد نه‌دی د ناسـورزړ ګی درنځ
جانا نه! دتور و نو سلسلـــی راته راځی

خندا که را ته نه کوی دســـرو شو نډو په سر
په‌ستر ګو کی مو سکی شه چی ښییر ی راته راځی

اوبه اوبه می زړه شو راته‌خاځی له بڼو
ته ګوره په ګر یوان کا سی‌کاسی راته راځی

ویل می در ته نه څه وکړم صبر می‌شو مات
آرمان ستا اننګو نه دبو ســـی راته راځی

راما تی دی کمځی کړه خوروه یی‌په ما ورو
خو بونه مساپر پس له مودو راته راځی

یاغی نظر دی ګوره پـر ما څـه کوی آخر
قبو لی را ته مه شه خوتو بـــی راته راځی

# سپرلی ته

سپر لیه را شه پر دی کلی راشه!
چی دساړه ژمی قاتلو ،خو نړیو شیبو
زموږ دباغ دکشما لیو و ینـــــی وچی کړ لی
او ما ښا می سیلیو
بیاد سپوږ می دزړه چاو دون
دمړو سلگیو شپو کی
دپیغلو ولواو سپیدا رو ملا وی ماتی کړ لی.

سپر لیه را شه پردی کلی‌راشه!
چی زموږ دکلی دپیغلو ټوګو درو نړیده
دلته دشو ته‌و په خیا لی باغ‌کی مو سکا مړه شوه
اوز موږ دمیندو مهر با نوموږ نی غیږ‌وکی
شو نه‌ی پر تیوداکوچنی ماشـــو مان وسو ځیدی
• • •

سپر لیه را شه پردی کلی‌راشه!
چی تور و دربلو کی زموږ دسفرو نو سپوږ می
درته‌و ستو رود ګلو نو دمیلاد په ماښام
کتری ، کتری له آسما نــــی د ښتو را ولو ید له
اودشنو وږو دځوانی اوپیغلتوب خوبو نه
دوحشی باد پەقهرجن ستو نـــی کی‌و نښتل
• • •

سپر لیه را شه پردی کلی‌راشه!
چی زموږ دپیغلو او تنکیو سرو غوټیو ستر ګی
دخا نګو بن نه دخزان په سیلی تویی شو لی
دلته دو چوا‌و تیرو تیروا غز یو لښکر
دتورو شپو دتورو ور ځو لـــه لمنی لاندی
دسرور ید یو د مور پلاربه ګیده‌وخیر له !!!

# د تصور ځپې

ګوره د زخمو غوټۍ څاڅي مې له سترګو نه
یار ته د کمڅو غوټۍ څاڅي مې له سترګو نه

ته چې د اتیاری کوڅې ټولې دي باغچې
جام جام د سپرلو غوټۍ څاڅي مې له سترګو نه

پریو تل له شو نهٔو می ستـــــاد اننگو گلان
گرانی! دنشو غو ټی څا څی مـــی له ستر گو نه

مات میشو دصبر جام ښکل می کړه مینو شه خو له
ماتی د تو بو غو ټی څا څی مــــی لهستر گونه

اوښکه دلیمو دباغ زغړی دیقدم پسی
گوره داسرو غو ټی څاڅی میلهسترگو نه

ووری دننگیال پرسر ستادتصور څپې
راغلی دخیا لو غو ټی څاڅی مـــی له سترگونه

# غزل

چادړ ته ویل چې دی ښکلا اخلم؟
جار دی له بلا شم ستا بلا اخلم

ماچې ملامت ګڼې ویر جن چې یم
ځان ته مې ژړا تا ته خندا اخلم

پام خو در قیب له شره دو مـره وی
نوم دی زړه کی پټ غو ندی په‌غلا اخلم

ستا په یاد آشنا چی دی نا زکـم نشی
ټول عمر نا زو نه دهر چــــــا اخلم

گرم نه دی زاهد چی می کا فــر گڼی
نوم اول دستا په یــاد اللــه اخلم

# غزل

هیری شوی وعدی په هوا والو تی
رامی غلی گیلی په هوا وا لو تی

بنکل کړ لی زاهدو دسا قی گو تی
ماتی شوی تو بی په هواوا لو تی

دی بحر نو شی خودی حیران کړمه
شیخه! زنګیدی په هواوالو تــی

تاچی کړی ښکاره لهلوپتهی ستر ګی
خلکو نه شملی په هواو ا لو تی

داسی را تهبرندی برندیمهګوره
سترګو نه لمبی په هواوا لو تی

پورته چی ننګیالدر ته کتی نهشی
اوښکی پښتنی په هواوا لو تــی

# الطاف

راشه چی کمخو ته‌دی شم تــول لکه دگل
سرو سرو اننگو ته دی شم تول لکه دگل

مات مات دی پەمخ کړه راتەسیو ری دوربل
تورو ما بنا مو ته دی شــــــم تول لکه‌دگل

جوړ چې دی په زړه کړ را ته‌سور باغ دپړ هر
دی‌ښکلو سپرلو ته‌دی شم تــول لکه دگل

ښو نڼو کی ښیراکوی په ستر گو کی دعا
دی جوړو نخر و ته دی شم تول لکه دگل

اوښکی دشبنم دی چی را ځــــی دگل په سر
مخ باندی خو لو ته دی شم تول لکه دگل

نن یی چی الطاف کړ لمه تــول غزل‌غزل
ستر گو پښتنو ته دی شم تــول لکه دگل

# غونچی

بیادسپیرو غرو نو په‌څنډو کی

دواورو دا نی

دلمر دشو نډو د غو ټیــــو

دبر ښنا تر سیورو

دساړه ژمی زهر جــــن

او خو نړی شیبه کی

دسر و غا ټو لو دمو سکا

دمړو سلګو په مزار

اوښکی دغم وورو ی

او :

دشنو نیالگیو دقدم دزړه تنگـــی درزاته

دخپلو اوښکو دغو ټیو

رژیدلی باغ نه

امیل دویر غوړوی

اود سبا دښکلی ناوی

دکمځو ښکلا ته

دخپلوویښو له تنکیو

غوړ ید لو با غچو

سپینی غونچی جوړوی .

دفخر افغان پاچا خان په‌یاد

# بابا!

چاویل چی لاړو دپښتو بابا؟
زموږ ددی آسمان ، آسمان شملو بابا

دا معزور همت، شخی پگړی چی‌وی
تل‌به‌وی‌رهبر دقا فلو بابا

گور ی‌چی زموږه عظمت څو مره دی
لمر مو شو دوېر وو طنو بابا

لیچو کی زنځیرچی‌مو تیینګیږی‌نه
داسی بند شکن کړو درزمو بابا

دلته به پښتون مګر ژوندی نه‌وی
نوم چی دی شی‌هیر د پښتنو بابا!

تاچی راته کوم پرتم پری ایښی دی
ساتو یی په ستر ګو په‌لیمو بابا

# توبی اوخمارونه

هره چغه می خندا ده هره اوښکه می‌پیا له‌ده
هره کړ یکه می مو سکا ده په‌هر سوز کی می نغمه ده

راته باغ دتبسم دی دهر ځوزاود خس ژبه
هره شګه راته زرده هره تیـــږه می‌کعبه ده

هره پرښه دبید یا میدسره رزد لور مچکه
هریو غم را ته ساقی دی کنډواله می میکده ده

له بی درده عقله ستړ ی دجنوند هستی تړی
دهو سی لور می لیلاده هره‌دښته می‌دیره ده

نه اخښلی په گناه یم نه د چاد جنت وړی
هرخمار پسی تو به ده په توبــی پسي نشه ده

# غزل

بیا چی می شملی له او بنکوډکی شوی
وچاود ی لیمی له او بنکو ډکـــی ښوی

چر ته یوسم خدا یه ! دانیم سوزه ښپه
داسترۍ ډیو ی له‌اوبنکو ډکـــی شوی

ښنګه به مې جام کړم لــــه جنت نه ښار
رامې غلي تو بې له او ښکــوډکې شوی

ښو مره گنهکار یم چې قبلیـــــږی نه
با دیو وړی سجدی له اوښکوډکی شوی

اخله مې له ستر گو په خو له نه راښی
گونگی شوی گیلی له اوښکو ډکی شوی

اوس مې نو سپرلیه په زړه مــه راښه
داسوی میر ی له اوښکو ډکـــــی شوی

# څاڅکي.. څاڅکي

بياددې تور آسمان په غيږه کې

دوريځو هادې

په‌تورو شپو کې

دسپوږمۍ په‌وينو و لمبيده

اواور نې پادو نه

دشمنو پستودپيغلتوب دو خت

شينکي خوبونه

تنکي تنکي سوځوي،

اوپه دې شپو شپو دا ما نو کې

دهو سيو بچې

اود زيتونو

دتنکي ذهن بې ژبې پاڼي

دخپلو وينو په بدل

څاڅکي دالمر غواړي .

# غزل

نن مې چې اوښکه پښتنه راغلله
جانه! حضور ته دې جرګه راغلله

ورځ مې چې تېره په سجدو باندې شوه
شيخه! ګا له ته مې کعبه را غلـــــه

هورگی دجام راته موسکی‌موسکی شوی
په ننو اتو می تو به را غللــــه

رگه! خه‌پاتی درکی دی‌او کنــــه؟
پس‌له مودومی خو نخوره را غلله

پاس به‌یی خودېرمه په‌سردلیمو
شونه‌و کی جام جام میکده راغلله

زه یی له‌باغ دپیغلتوب شم‌لوگــی
تورو تیا رو کی‌می‌دیوه را غللــه

# غزل

ږه يې تږی دګو مټ نه يم د ساقي جا مو نه څه کړم
يو مين يم دښمنو څوزو د سپرلی ګلو نه څه کړم

د ثقه پر په لاس مې امرې د جل و هلی خندا پانه
همو مسکا د مين ښېو کې خمارې وختو نه څه کړم

دغمو دبحر ماهویم گر خوم بیړی پرو چه
ماساحل لیدلی نه دی گلکخــــی رنگو نه څه کړم

دامرو گنبت می وچ شوی درنگینو باغو خوا کی
زه چی تول عمر خزان یم نرگسی مخو نه څه کړم

داحد نورو خوړلی جل زده دکـر بــــلا یــــم
نوك په نوك دا غی دا غی یم ستــا شبینکی خالو نه څه کړم

دشو گیر پر نیلی سپو ریم شپه قطره قطره پر مرووړم
دکمخود غرو نو لاندی شرا بــــی خوبو نه څه کړم

# دچم شیبی

داخه شمعی ، څه تیاری‌دی چی‌نه مری نه پاتی کیږی
څه دویر او خندا شپی دی چـــی نه مری نه پاتی کیږی

نه په شونډو کی موسکا شته، نه دچا سترګو کی اوښکی
څه مړ ژوا ندی مر حلی دی چی نه‌مری نه پاتی کیږی

نه مو چيري گناه پر يښوه نــــه سجدی شوی‌رانه هيري
دملا اورند وعدی دی چــــــی نه مري نه پاتي کيږي

هريو گوټ دزهرو جام شوهرخمار دپر هر مالگه
دتقدير دچم شيبې دی چــــــــی نه مري نه پاتي کيږي

دخزان غيږه کي پروت دی راکوی دسپر لی زير ی
څه درو غجني ياراني دی؟ چــــی نه‌مري نه پاتي کيږي

# پسرلی، ږلی، باران

سږ کال به هیڅکله سپر لـی‌را نه شی
غوټی به چا ته شنه مو سکـــــا ونکړی

ځکه: دا کلی، دا کورو نه
او داورا نی کو څی

خپله سپر لی، سپر لی‌دی
اولاټو کیږی
هره‌ورځ پکی دشتی گلو نه

زموږ دوینو گــلان

زموږ دوینو غوټی.

سبز کال به هیشکله با ران و نـــه ووری
خمکه به هیشکله محتا جه‌داسمان نه شی

ئکه:هر گام اوهر قدم
راته باران نیو لی

یوه تر یه‌لی باران
یوی تر یه لی‌زلی

داسی باران چی زموږ دپیغلـــو دبنو له وریځو
له‌دی یتیمی خمکی

آن پـه‌آسمان ووری .

# ملامت کاته

چي‌مي آشنا شوی بیګا نه‌و لــي شوی
زړه ته چي راغلی تري ستنه‌و لی شوی

چي مي مر هم نه شو ی دســوی پرهر
نو مي دزهر و پیما نه ولـــــــي شوی

چی دی ویده نکرم دزلفو پـــه شپو
راته دالو یه شو گیره و لـــی شوی

لامی دروړی در ته شو نـــه ی نه‌دی
داسی له شرمه تکه سره ولـــی شوی

شم دی لو گـــی له مـــلا متو کتو
وا یه دا تو لـــه بها نه و لـــی شوی

اهداء زما سپین ږیری شهیدپلار ته

# دمیلادپه‌شپوکی

ای! ددی شنه آسمان په غیږه‌کی ښوب وړی سپو ږمی!

ای ! په دی شپوکی دپړ دیسود سفر ډیو ی!
ای! دګلو نو او دپیغلو ،پیلغو وینو پری !
ته‌را ته ګوری؟

ته راته‌ګوری چی دګړیکواوتیارو نننه شوم؟
اودساړه ژمی خو نی او ګنهګار ابلیس

زما د ګلابو او نرګسو باغ کی اورو کاره!
ته راته ګوری؟

ته راته گوری چی محل می له کارغانو ډك شو ؟
اوپه و يالو کی دهیلیو بچی وسوزیدل!

اوزموږ دکلی میندی
دمیلا دشپو کی(بی لاسو اوپښو بچیان زیږوی))؟!
ته راته گوری؟

*　　*　　*

ته راته گوری چی می ټول کلـــی چاړه چاړه دی؟
خلك په نوکو او برچود یوبـــل سمتر گی باسی!

اودما لت نجو نی
په خپلو تورو، تورو څنوکی ځوزان ټك وهی؟

آه
آه نازو لی سپوږ می!
آه درنا موری !

# داجيحون، جيحون گلونه

بيادډې غرو نو په څو کو
بيادډې دښتو په کاڼو

دې شينکى ، شينکى فضا نه
دې ښا يسته، ښا يسته هوانه

پهسر سرى سکروټى را غلى
شرابى او رنى نجو نى

داساړه ،ساړه نا ووّ نه
دا واورینې، واورین راغونه

داکنګل ، کنګل روډونه
دااغزی ،اغزی خوږونه
ګوره سوځی، ګوره سوځی
دهر ګل دڅو ند له تاوه.

• • •

هره تیږه الوا نی ده
هره پرښه داور ژبه

هر ګړ نګ جنت ، جنت دی
هره پاڼه حوره، حوره

هر ګلبو ټی تور وربل دی
هر محل مو تاج محل دی
یوزر تشمت، زرتشت ماښام دی
سوځوی دوریځو غرونه.

داپر اخ، پراخ‌ده ا گونه

داجیحون ، جیحون سیندو نه

دالبر یز ، لبر یز جا مو نه
داسپوږ می، سپوږمی مخو نه
گوره خاندی ! گوره خاندی !
دسپر لی دناوی کور ته

• • •

بنکلوی در نا شمو نه‌ی

ویلو ی دشپو مزلو نه
سو ځوی دور یخو غرو نه
دا جیحون، جیحون گلو نه

# فهرست

شعرونه مخونه





دشاعر چاپ شوې شعري مجموعې:

ډالۍ : ۱۳۶۳ کال

سپيره ډاګونه او غوړېدلي بزغلي : ۱۳۶۴ کال

هغه شيبې، هغه کلونه : ۱۳۶۵ کال

څاڅکي ... څاڅکي، همدغه مجموعه: ۱۳۶۸ کال



اسحاق ننګيال






-۳۴۴-